د کتاب نوم ــــــ يه پېښوره په تا ځۀ شوي دي

ليکوال ــــــ شعيب خان خټک

اشاعت ــــــ ۲۰۱۴ء

کمپوزر ــــــ شعيب خان خټک

شمېر ــــــ پنځۀ سوه (۵۰۰)

پرېس ــــــ عامر پرنټ اينډ پبلشرز پېښور

بيعه ــــــ ۱۵۰

درک ــــــ قمرميله نظام پور، نوښار

موبائل ــــــ ۰۰۹۲-۳۰۱۸۷۶۴۵۴۳

اى مېل ــــــ shoaib_paaras44@yahoo.com

په اهتمام ــــــ اجمل خټک پښتو ادبی جرګه خېراباد، نوښار

د موندلو درکونه

يونيورسټی بک ايجنسي پېښور

شاداب بک سنټر کېولری روډ نوښار

الاخوان بک سنټر نظام پور

انور خان لالا پښتو اکيډيمی پېښور

# تړون

○ د خپلې خوږې مور او خوږ بابا جان په نوم چې د چا په د عاګانو راته ګرانې اسانېږي-

○ د خپل خوږ، مېنه ناک، ګران او بې بدله استاد پروفيسر مسعود جان په نوم او د هر هغه استاد په نوم چې د خپل فرض سره مخلصه دے-

○ لکه د مشر ورور خوږ ملګری دلدار علی شاه (مرحوم) په نوم چې ټول عمر ې د انسانيت خدمت ته وقف کړے وو-

# فهرست

# يو څو خبرې

د دې کتاب "يه پېښوره په تا څهٔ شوي دي" مصنف زمونږ زلمے شاعر ښاغلے شعيب خان خټک دے چې تعلق ئې د خوړه خټک نظامپور يو ډېر ښائسته کلي کمرمېله سره دے۔ د خټک نامې دا کلے د افريدو علاقې "موسٰى درې" سره په بريد پروت دے۔ د موسٰى درې لوے خوړ هم د دې کلي په مېنځ کښې بهېږي ۔د دې کلي د يو چينې اوبهٔ د بجلۍ د پمپ په ذريعه د چراټ چهاونۍ ته خېژي۔

د دنيا د هنګامو او د شورنه لرې په خاموشه فضا کښې د دنګو غرونو په لمن کښې او د موسٰى درې د سپينو رڼو اوبو په غاړه اٰباد دا کلے چې پلوخې، ببرې، زېړونَي، ګنډيري، او کرکڼې پکښې پرېمانه دي خپله هم يو شاعرانه او مينه مينه ماحول لري ۔او لکه چې اجمل خټک دا شعر د داسې کلي او ماحول د پاره وئيلے وي چې :-

په دې ښکلې فضا کښې چې هم حُسن شته هم مينه
رباب که دلته کېږدې نو پخپله به ټنګېږي

د دې کلي وړومبې صاحبِ دیوان شاعر ښاغلے عبدالحمید بابا وو چې د کلام نمونه ئې (قلمي) د خپل نمسي پروفیسر اظهار خټک صاحب سره محفوظه ده ۔اظهار صاحب هم د پښتو ژبې ښۀ لیکوال او د دوو کتابونو "هارون الرشید د شنو کانو خټک" او د شعري مجموعې " د دیدن کنډاو" مصنف دے۔ په کراچۍ کښې مېشتۀ شاعر ادیب ښاغلے اقبال شاه (ماښام خټک) هم د دې ښکلي کلي استوګن دے چې د شعري مجموعې "په وجود کښې نه ځائېږم" مصنف دے۔ زلمي شاعران اقبال احمد سحر خټک او حوالدار شاه باران خټک هم د دې کلي استوګن دي ۔په دې وړوکي شان کلي کښې دومره شاعران لکه چې د ستر خوشحال خټک د دې شعر عملي تصویر وي چې

د خوشحال سره چې کیني یو څو کاله
دا د غرۀ خټک به واړه شاعران شي

شعیب خان خټک په کال ۰۲-۰۲-۱۹۸۶ کښې د جعفر شاه کره زېږېدلے دے۔ په کال ۲۰۰۲ کښې لسم ۲۰۰۴ کښې دولسم ۲۰۰۶ کښې څوارلسم او ۲۰۰۸ کښې ئې د ګورنمنټ پوسټ ګریجویټ کالج نوښار نه په سیاسیاتو کښې د ایم۔اے ډګري اغستې ده۔د بي ایډ او ایم ایډ ډګرۍ ئې هم اغستې دي او نن سبا په دوبۍ کښې محنت مزدوري کوي۔

شعيب خټک د کمرمېلي په دغه غرئيزهٔ سيمه کښې خړپوسې کړې دي .په دغه دنګو غرونو، کَمَرونو او درو په شاعرانه ماحول کښې رالوئې شوے دے.د دغه شنو غرونو د لمن نه د راوَتو سپينو چينو رڼې اوبهٔ ئې ښَنبلي دي نو ذهن او فکر ئې دلته نه ځلا او ښکلا اغستې ده او بيا ورته قدرت د شاعرۍ ملَکه ورکړې ده د اظهار قوت ئې وربخښلے دے نو د ځان غم ئې کم کړے دے.د خپلې خاوَرې، خپل اولس، خپلې ژبې، تاريخ او ثقافت فکرونو زيات کړَمن کړے دے." يه پېښوره په تا څهٔ شوي دي" ئې د دغه لوغړن احساس هنداره ده.

شعيب خټک خو په ظاهره پېښور ته مخاطب دے خو دغه پېښور ته مخاطب کېدل ټولې پښتونخوا ته مخاطب کېدل دي ځکه چې پېښور د پښتونخوا مرکز دے او د پښتونخوا د ګوټ ګوټ خلق چې د هر ځائے دي هر څوک د هرې تپې د هرې کوڅې او هر کلي دي دلته د پېښور په فراخه، خوږه، پسته او ګل ورينه سينه ژوند کوي نو د پېښور درد، ژړا، وير او يادوَنه د سالمې پښتونخوا او پښتنو درد، ژړا، وير او يادوَنه ده.

په دې عمر کښې دشاعر د ډېرې سنجيده او مقصدي شاعرۍ يو څو نمونې وړاندې کوم.

حالات که هر څنګه وي ژوند کوي خپل
پښتانهٔ چا وې چې د ډار خلق دي

شعیبه دا قصه خو تولـه ورانـه د هغـو ده
چې دي په حفاظت باندې معمور زما د کلي

لکه د ستر احمد شاه بابا ورته خپله پښتونخوا ځومره ګرانه ده.

چې چرته هم ترې لاړ شم د راتلو فکر کښې اوسم
والله که مې د ښکلې پښتونخوا زړګے صبر يږي

د پښتنو په بدحالۍ ئې دې لوغړن فکر ته اوګورئ-

اور دې په کور پورې د ے ئې په خطر پښتونه
لـړ په حـالاتو بانـدې اوکـړه نظـر پښتـونه
ولـې بـه نـه يم خفـه څنګـه بـه غـم نـه کـووم
تۀ چې په شته کور کښې ئې کډه په سر پښتونه

هر هغه څوک چې د خپلو مفاداتو، غرضونو او د چا د ناولو منصوبو د پاره کار کوي او زمونږ زلمي ګلونه ماشومان دې ته تيارَوي چې ځان پورې بم اوتړه ـ دا د جنت او د خدا ے د رضا لار ده په حقله شعيب وائي.

بـل قتلـوي او کـه نـه ځـان قتلـوي
مسـلمان پـاخې مسـلمان قتلـوي
کـه جنـت غـوارې پـه ځـان بـم اوتـړه
پـه دې خبـره مـې ځوانـان قتلـوي

په دغه وحشت او بربریت ئې چې زړۀ درد اوکړي نو داسې ګویانه شي چې.

د چا سر نه وي د چا ښېپې د چا لاسونه توبه
مرګ په نېتهه دے خو دا نن سبا مرګونه توبه
دا چې د خلقو نه سرونه پرېکوي لګیا دي
سینه خالي لري که کاڼيئې دي زړونه توبه

په خپل پېښور مئین شعیب زړۀ غواړي چې د ګلونو دغه ښار ته لاړ شي خو خپله "ګوډ ے" ورته وائي چې زۀ درنه تور قمیص نۀ غواړم خو پام چې پېښور ته لاړ نۀ شې .شاعر دا اظهار داسې کوي چې.

د تور قمیص غوښتنه نه کوي د بم د یرې
ما ته مې خپله ګوډ ے وائي پېښور ته مه ځه

راځئ چې اوس ئې د رومانوي شاعرۍ څخه یو نمونه اوګورو.

داسې کوم ساعت دے چې مې هېره ئې
ته مې د خپل ځانه ژوند کښې ډېره ئې
هسې خو د خلقو نرۍ ډکه ده
تۀ راته د ټولو نه راتېره ئې

د ښاغلي شعیب ختهک په دې مجموعه کښې پابند او آزاد نظمونه هم شته او قطعې، هائیکو هم .په پېښور ئې یو سندره چې د کتاب نوم هم دے شته.د شعیب ختهک دې کتاب او بیا

دې شاعرۍ ته ګورم نو وئیلې شم چې که شعیب د نن دور ښه شاعر دے نو سبا ته به د پښتو لوے شاعر وي.
دا مجموعه په اجتماعي ډول د پښتو ادب د پاره یوه ګټَوره مجموعه ګڼم او لاس په دُعا یم چې د زلمي شعیب دا فکرونه دې د پښتونخوا دې ویرژن او کړمن ماحول او زخمونو ته پَهې او دوا شي. د قلم او تخلیق قوت دې ئې نور هم سېوا شي چې پښتانۀئې د فکر نه ځلا او ښکلا واخلي. آمین

هارون الرشید خټک
جنرل سیکرټري
اجمل خټک پښتو ادبي جرګه
خېرآباد ضلع نوښار
۲۰۱۴-۰۲-۱۶

# زلمے شعور ، زلمے شاعر

د نائن الیون نه پس چې د پښتنو په خاؤره کوم د اور او زور
بُوزغلے اونوستے شو- د هغې تیغې د هر باشعوره کس په فکر،
احساس اوزړۀ کښې نېغې ښخې شوې دي- پښتنې عظیمې
زمکې چې تل ئې د امن اتلان زېږولي دي- چې بچي بچي ئې د
مور په غېږه کښې د امن الله هو اورېدلې ده- په ځانګو کښې
ئې د امن او مینې خوږې سندرې اورېدلي دي- هغه پښتنې
میاندې چې په ژبه ئې د امن الله هو وه- هغه خوئندې چې د
ورونو په ورائې د سیالۍ ستائنې کولې هغه شپونکي زلمي
چې د غرۀ په لمن کښې ئې په شپېلۍ کښې د امن او خوږه
سندره اړوله--- دا هر څۀ لکه چې د خوب یوه خوږه جُوته وه-

د بلا خپسې دغه خوب تالاترغه کړو- د بلا د خپسې پنجې د امن په مرۍ غلې شوې- زما د امن اتلان، زما واړۀ واړۀ ګلونه ماشومان، پښتنې ميانديې او خويندې، زلمي سندربولي د خپلو ارمانونو د سلګو شور ته د بارُودو په لوګو کښې ساه نيولي او غريو نيولي کښېناستل- د امن خورې الله هو او خورې سندرې اوربدو په ارمان د وير په چم کښې سترګې په لار دي- غوږ غوږ دي- چې کله به د غرۀ د لمن نه د شپونکي خوږه شپېلۍ د امن سندره د زړۀ په تار اړوي-

دا زما د خوږې پښتنې زمکې نقشه ده- دا زما د خوږې زمکې قيصه ده، دا که الميه ده، که حادثه ده، او که قسمت دے- خو يوه لاره ده- چې د امن ده او هغه د سوچ ده، فکر ده، د احساس ده- هغه سوچ هغه فکرچې د وحدت دے او د عمل دے- ځکه چې----

وحدت د عمل راشي چې وحدت ؤشي د خيال

دا د پښتنو شاعر بابائے غزل امير حمزه خان شنواري وئيلي دي- دغسې په هر دور کښې زمونږ شاعرانو د امن او وحدت تپه کړې ده- شاعر د زمانې باشعوره انسان وي- د زمانې په نشيب و فراز د شاعر ژور نظر وي- ځکه چې هغه سترګور وي-

سترګور هرې زمانې پېدا کړي دي، شاعران هر دور پېدا کړي دي- خو د جنګ او بارُودو دې او تېرې عشرې چې کوم شاعران پېدا کړي دي- هغه خو داسې لګي چې د خپلې خاؤرې زمينې حقيقتونو زېږولي دي- په دغه نوخېزه، باشعوره زلمو کښې يو زلمے شاعر شعيب خټک هم دے-

شعيب خټک ته دوه غټ اعزازونه دا هم حاصل دي چې د دوو لويو ښځو د ټاټوبي دے- د خوشحال خان خټک او د اجمل خټک د نغري د غاړې دے- د خټکو د غرونو دے- شعيب ته که په ميراث کښې د نيکونو د شاعرۍ برخه رسېدلې ده نو فطري او قدرتي خبره ده- خو د نن دور حالاتو چې هغه ته کوم "شعور" وربخښلے دے نو دا هم د امکان نه بهرنۀ ده- چې د دې حالاتو پېداوار ورته اووايو- هغه د نن شاعر دے-

او زمونږ د نن شاعر د د سندرو په ځائے ساندې وائي- د خپلو ويرژړلو او دړدېدلو ساندې- هغه سپرلي او ځوانۍ نۀ ستائي- مړې ژاړي مرګونه ژاړي- او ژاړي به ولې نه چې دا غم لړلې منظرنامه زما د خاؤرې ده- شاعر د عصر نه، نۀ وتے شي، نۀ پرې سترګې پټولے شي-

شعيب خټک څۀ هم که زلمے دے، ځواني جذبې لري، د

ځوانۍ او مستۍ احساس به ئې په زړۀ کښې غزوَنې کوي- خو هغه دغه نه شي کوے- ځکه چې هغه باشعوره دے- د هغه په ذمه غټه ذمه داري ده- هغه ته د قام ستړګې دي، د هغه خبرې ته د قام غوږونه تکې دي- د هغه په حالاتو ژوَر نظر دے، د هغۀ مشاهده تېزه ده- هغه وينې چې په دې خاؤره څۀ کېږي- ځکه خو قلم راخلي او ليکي چې------

" يه پيښوره په تا څۀ شوي دي "

دا د زلمي شعيب خټک د شاعرۍ مجموعه ده- زما د خبرو تائيد د کتاب د عنوان نه هم کېدے شي- او يا دا چې د دې کتاب د مندرجاتو په تناظر کښې زما خبرې دي- په دې مجموعه کښې ګڼ شمېر غزلې دي او څنې نظمونه، قطعې او هائيکو هم- په نظمونو کښې يو څو ازاد نظمونه هم شته- او د دې صنفونو په رڼا کښې وئيلے شو چې په ټولو ورته برے حاصل دے نو ښۀ په ډاډه پرې قلم پورته کولے شي- د شعيب خټک عمر دومره نۀ دے خو د ليک او تخليق نه ئې انداز لګي چې دننه ئې يو ښۀ توانا فنکار موجود دے- په لږ عمر کښې ئې د ملک نه بهر دنيا هم څۀ لږه ډېره کتلې ده- د مسافرۍ خوارۀ تراخۀئې هم څکلي دي- د هغۀ په ليک کښې

به تاسو د غـه حقيقت هم اووينئ چې د مسـافرۍ شـپې ورځـې هغه په کومو حالاتو د خپل نغري نه بهر تېرې کړي دي- د خپلو خلقو انغري چې تاودۀ ساتي نو د شعيب غوندې زلمي به دغـه قرباني ورکوي-

د ننني حالاتو عکس د هغۀ په شـاعرۍ کښې څۀ په دې رنـګ دے----

جنـګ د پـردي کـور زمـا کالـه کښـې دے

هـر خـوا تـه شـر خـور زمـا کالـه کښـې دے

خـوري رانـه پـه چـل چـل کښـې د سـر سـړي

داسـې سـړي خـور زمـا کالـه کښـې دے

په دې شعرونو کښې د روانو حالاتو ژوند ے حقيقت پـه داسـې فنکارانه ډَول ښکاره کول د زلمي او تعليم يافته فنکـار شـاعر شعيب خټک خاصه کېد ے شي- هم ددې نه ئې مونږ د فـن، تجربې او مشـاهدې انـدازه لګـولے شـو- تـر دا وختـه د شـعيب خټـک د فکـر او نظـر لانـدې د عصـر نقشـه او د فـن پېمانـه د اولس د سـوکالۍ، امـن او خوشـحالۍ پـه نقطه ولاړه ده- دا يـو ارتقائي مزل د ے- وخت سره سره په مشاهده او شعور کښې يو خَـوالے راځـي- تجربـې بـه کېـږي، زاويـې بـدلېږي- او شـعيب

خټک ته زمونږ ډېرې طمعې دي- تر دې دمه د غزل په لړ کښې یو کامیاب زلمے شاعر دے- د سیاسي، سماجي او معاشرتي اړې ګړي او ستُونزو په رمز او ایماء پوهه دے- د حل په لټون ئې دے- او خپله وظیفه د یو شاعر په حېث په احسنه توګه تر سره کوي-

په نظمونو کښې ئې هم د فن او موضوع دواړو خیال یو برابر ساتلے دے- "خپل ګران بابا جان ته"، "زما کلے"، "مورنۍ ژبه"، "بدلون"، "ګیله"، او "یه پېښوره په تاڅهٔ شوي دي(سندره)" ډېر د اعلیٰ پایې نظمونه دي- "ګیله" یو آزاد نظم دے- چې زما خو ډېر زیات خوښ شو- په دې نظم کښې چې هغه د مسافر د کور ودانې کوم جذبات وړاندې کړي دي- حقیقت کښې دا د هرې ناوې هرې کورودانې د زړهٔ آواز دے- په دې نظم کښې ډېر په فنکارۍ یوه ښکلې افسانه، یوه ښکلې قیصه چې حقیقت ئې په شامنظر کښې موجود دے ښکاره کړې شوې ده- او د دې نه انداز لګي چې شعیب خټک یو کامیاب نظم ګو هم دے- هائیکو ئې هم داسې اوګڼئ چې د تجربې په بنیاد لیکلي دي- ښهٔ کوشش دے-

په مجموعي توګه " يه پېښوره په تا څهٔ شوي دي " زما په خيال د شعيب خټک يوه ښهٔ پېرزوئنه ده- کوشش ئې د ستائيلو د ے- الله دې اوکړي چې د مستقبل يو منلے فنکار شاعر ثابت شي- او هم دغسې ده- هغه خلق وائي کنه چې مياشت له ورايه معلومېږي-

فقط

همايون همدرد خويشګي
ګورنمنټ پوسټ ګريجويټ کالج نوښار
۲۸ فروري ۲۰۱۴ء

# زما شاعر، زما اٰواز

مولانا روم يو ځل ډيوه په لاس بهر ګرځېدو- چا ترې تپوس اوکړو "مولانا صاحب څۀ درنه روک شوي دي؟"- مولانا صاحب ځواب ورکړو "انسان ګورم"- سړي ورته وې "دا دومره ډېر خلق چې دي"- مولانا صاحب وې "دا خو خلق دي زۀ انسان ګورم"-
هم دغسې که ما نه څوک زما د شاګردانو په حقله تپوس اوکړي نو زما ځواب به هم دغه وي چې زما په شاګردانو کښې شعيب ختک لکه د يوې ملغلرې ځليږي- د شعيب خان د اخلاقو او کردار په حقله ليکل هيڅ ګران کار نه دے- ځکه چې د يوښۀ کردار څومره هم ضروري اجزاء دي- هغه ما په شعيب خان ختک کښې ليدلي دي- انسان او خصوصاً اُستاد له په عزت او مينه ورکولو کښې خپله ثاني نه لري- د انسانيت د ښېګړې د پاره چې ترې څومره هم کېدے شي نو ډېر په اخلاص ئې کوي- زړۀ ئې د قام په غم غمژن او روح ئې د انسانيت په درد دردمند دے- او هم دا وجه ده چې خپل لاس او زړۀ ئې په قامي مسئلو او انساني رويو باندې د ليکلو نه صبر نه کړے شو او هر هغه سوچ او احساس له ئې د قلم ژبه ورکړه کوم چې د هر ماشوم، زلمي او بُوډا ژبه ده-

په هر انسان د هغۀ د قامي حالاتو، چاپېرچل د وسوسو او د کلتور د بدلون اثر وي- خو ډېر کم خلق دا هر څۀ کاغذ او قلم ته اوسپاري- او هم دغه کمو خلقو کښې نن شعیب خان ځان شمار کړو چې د دۀ د پاره کمه او زما او د پښتون قوم د پاره د خوشحالۍ او فخر خبره ده-

که په لنډه خبره زۀ شعیب خان خټک بیانول غواړم نو هغه به داسې وي چې------

جو دانــه غونـدې یــو لال پکښــې پېــدا شــي
نــور همــه واړه د تــورو کـــاڼو غـــر دے

پروفیسر مسعود جان

گورنمنټ پوسټ گریجویټ کالج نوښار

۲۸ فروري ۲۰۱۴ ء

# دوه خبرې، يو ارمان

دا خو ښکاره خبره ده چې د هر شاعر په زړهٔ دا ارمان وي چې د هغهٔ شاعري دې د يو کتاب شکل کښې چاپ شي- هم دغسې زما هم دا ارمان وو چې زما شاعري دې د چاپ د مرحلې نه تېره شي- خو زما د ارمان نه زيات زما د ګران بابا جان دا ارمان وو چې زما د شاعرۍ کتاب چاپ شي او که دا اووايم چې زهٔ دا کتاب هم د هغوي د ارمان پوره کولو د پاره چاپ کووم نو غلطه به نه وي- ځکه چې هم داسې ده- او دا ليکل چې کله د پرېس نه ما ته د يو کتاب شکل کښې ملاو شي نو دا به زما د ژوند تېولو نه اهمه ورځ وي- ځکه چې زهٔ به د خپل بابا جان يو ارمان پوره کړم- زهٔ به په هغه زامنو کښې شمار شم چې د خپل بابا ارمان د هغهٔ په ژوند پوره کړي- په خپلې شاعرۍ خبرې ځکه ضروري نه ګڼم چې درَنو مشرانو او پوهانو پرې ليکل کړي دي- زهٔ د ښاغلي پروفيسر همايون همدرد صاحب، د ښاغلي هارون الرشيد خټک صاحب، د خپل خوږ ترهٔ ماښام خټک صاحب او د خپل ګران او زړهٔ ته راتېر اُستاد

جناب مسعود جان صاحب ډېر ډېر مشکور یم چې زما په دې کتاب ئې د خپلو خیالاتو اظهار کړے دے- زۀ د پروفیسر اظهار خټک صاحب او ورسره د اجمل خټک ادبي جرګې خیراباد د ملګرو د مرستې او ډاډ ګېرنې هم مننه کووم-
په آخر کښې زۀ د خپلو ملګرو اشفاق احمد (پبي)، محمد عاصم (خویشکي) فضل الرحمان (فطرت خټک)، اقبال احمد سحر خټک (کمرمېله)، حوالدار شاه باران خټک( کمرمېله)، خالد بابو(اټک خورد)، امتیاز علي شاه (لشوره) د خپلو ترونو، ماما ګانو، او د خپلو خوږو ورونړو، خوئندو او نورو ټولو خپلو خپلوانومننه کووم چې زۀئ د دې کتاب چاپ کوو ته را اوپاروم-

په ډېره مینه
شعیب خان خټک
کمرمېله نظام پور
۲۰۱۴-۰۳-۰۱

# حمد

لویـــــه خدایـــــه تـــــه باچـــــا ئـــــې
تـــــه پـــــالونکې د هـــــر چـــــا ئـــــې

نـــــۀ خـــــو ســـــتا نـــــه څـــــوک پیـــــدا دي
نـــــۀ خـــــو تـــــه لـــــه چـــــا پیـــــدا ئـــــې

هـــــم مالـــــک د اٰخـــــرت ئـــــې
هـــــم مالـــــک د دې دنیـــــائې

تـــــه لـــــه هـــــر چـــــا بـــــې نیـــــاز ئـــــې
تـــــه د هـــــر چـــــا نـــــه اعلـــــي ئـــــې

د یتـــــیم، لاچـــــار، بـــــې وســـــه
لویـــــه خدایـــــه تـــــه اســـــرهٔ ئـــــې

خدایـــــه نشـــــته د ے شـــــریک ســـــتا
تـــــه یـــــواځې، یـــــک تنهـــــا ئـــــې

لرکړه په خپل فضل ټول آفات مې د وطن
یه خدایه خراب شوي ډېر حالات مې د وطن

یو دا نه چې په کور بازار کښې سر ته خطره ده
محفوظې جنازې دي نه جومات مې د وطن

معیشت په ښکته درومي نه روزګار شته نه ښهٔ مشر
یوځائې راجمع شوي مشکلات مې د وطن

په ننګ، مېنې، غېرت او مېلمستیا کښې ئې ملګرو
ثاني نشته په واړه کائنات مې د وطن

د امن پسرلیه دلته زر راپېښهٔ اوکړه
لوګو راته تور کړي شنه باغات مې د وطن

په هغه وخت مې وینه په جوشونو شي شعیبه
چې ګوتې را اوچتې شي په ذات مې د وطن

تا ته هم خیال په هر یو کار په هر قدم پکار دے
زۀ هم محبوبې چې دا خپله غصه ښنم پکار دے

خلقه بدل دي مقصدونه د ژوندون نړۍ کښې
څوک د الله نعرې وهي چا ته صنم پکار دے

که بدلون غواړو نو اول به بدلوو ځانونه
د دې نه پس راته یو مشر، تکړه، سم پکار دے

اغیاره مه ورکوه بم بارود ټوپک لاسو کښې
زما وړو ته خو په ګوتو کښې قلم پکار دے

تر څو به ژوند کوُو په داسې خونړي ماحول کښې
ملګرو پاڅئ دې خبرې ته څۀ غم پکار دے

مونږ پښتانۀ خو خپل سرونه شیندُو اور مړ کوُو
مونږ ته خو امن وروروَلي په هر یو چم پکار دے

جنګ د پردي کور زما کالۀ کښې دے
هر خوا ته شر خور زما کالۀ کښې دے

خوري رانه په چل چل کښې د سر سړي
داسې سړي خور زما کالۀ کښې دے

ته ئې څۀ پرواه کړې ګله ستا پرې څۀ
وور که دے نو وور زما کالۀ کښې دے

یه اغیاره ستا د لاسه ستا په چل
ورور د ښمن د ورور زما کالۀ کښې دے

ستا کالۀ کښې تل وي د خندا جشن
تل د ژړا شور زما کالۀ کښې دے

شولو که یوځائے د لر او بر افغان
بیا ګورې سم زور زما کالۀ کښې دے

ستا د کوڅې دا طوافونه به تر کومه کړمه
تر څو به ستا تپوس د چم د هر ماشومه کړمه

ډېر څۀ دې راکړل ډېر ډېر شکر دے په دې قسمته
خو یو ګیله لرم، هغې نه دې محرومه کړمه

څومره هوښیار ښکاري راغلے دے زمونږ په کلي
ښکار هم زما کوي هم زۀ ئې ورته لومه کړمه

هسې نه را مې شي په خله د کور د خلقو مخکښې
زۀ ډېره یره ګُله هر وخت ستا د نومه کړمه

چې ورته ښکاري د انسان وینه په رنګ د اوبو
خدایه د داسې ظالمانو دې محکومه کړمه

اوس مې شعیب د خپل کالۀ په خلقو نه دے پېرزو
مینې پټ ستړګي تا تر دومره حده شُومه کړمه

★★★

ژونــد بــې لــه تــا نــه د اور لمبــې دي
ګرانــې جانانــه ورځــې او شــپې دي

يــو خــوا ئــې مــخ د ے لکــه د نمــر
بــل خــوا ئــې زلفــې خــورې ورې دي

زخمــي پــرې نــه شــي درنــه څــوک خلقــه
ژبــې لــه تُــورو نــه هــم تيــرې دي

ژونــد ښــکاري نــوم د ے د کړکيچونــو
کــم خــوا چــې ګــورم نــو مســئلې دي

ســتا نــه خــو ښــهٔ دي د ســتا يادونــه
هــر وختــې هــر ځــائے زمــا ســرې دي

بل ته اسره کړو بې غمه ناست يو
ځکه قسمت کښې زمونږ تيارې دي

زمونږه چم کښې بس بل څۀ نشته
هر خوا ته بم دے او دهماکې دي

دا چې مې زړۀ دے ډک د غمونو
څۀ د دنيا دي څۀ د هغې دي

## ښاغلے

چې پښتو وائي خو ليکلے نه شي
چې مورنۍ ژبه لوستلے نه شي
که ډېر کمال لري په نورو ژبو
هغه دي هېچرې ښاغلے نه شي

بېلتون د زړۀ د پاسه راکړے ټک جانانه
سترګې مې هم ډکې وي زړۀ هم راډک جانانه

شي تاج محل د مینې په سیند لاهو هغه وخت
چې راپېده شي زړۀکښې ګمان او شک جانانه
چې مسئلې پېدا شي نو بیا جرګه پکار ده
مسئلې نه حل کوي چرې ټوپک جانانه
د مصلحت خبرو باندې ځان کوڼ کړي خلق
د شېطانۍ خبرې کوي په ټک جانانه
چې نه راځې کلي ته نو ما ته دا اووایه
زۀ درته نه یاد یږم؟ یه په زړۀ کلک جانانه
زما د چم ګلالي پردي وطن ته درُومي
د روزګارونو نشته دلته درک جانانه

چې ما د پاره لیکي ما پکښې ستائې هر وخت
ستا هر غزل نه ځار شم زما خټک جانانه

★★★

يـــاره نـــن ســـبا خلـــق
نـــهٔ کـــوي وفـــا خلـــق

کـــارد نـــا اشـــنا اوکـــړي
بعضـــې وخـــت اشـــنا خلـــق

خپلـــو بـــال بچـــو لـــره
کـــړي مســـافرتیا خلـــق

هرخـــوا ځـــان ځـــاني شـــوله
څـــهٔ کـــړي مـــا او تـــا خلـــق

دې ګرانـــې ګرانـــۍ نـــه خـــو
ســـر دي پـــه ژړا خلـــق

خدائيګو چې ښائست لري
ډېر د پښتونخوا خلق

جنګ دے د پردي کلي
مري پکښې زما خلق

نه کوي رښتيا مينه
يه شعيبه دا خلق

## اختر ته

خدايه د نړۍ د هغه بل سر نه
خاص تر پېښوره امن راوله
هسې تش په نوم خوشحالۍ مه راوړه
ځان سره اختره امن راوله

ځنګه دې هېر کړم په اٰسانه حق حېران دې کړمه
زما د زړۀ د کلي خانه حق حېران دې کړمه

تۀ مې نظر نه غورځوې ژوند نه وېستې شې ځنګه
ما ته د ټول جهان نه ګرانه حق حېران دې کړمه
ډېر کړکېچونه مو تر مېنځ دي درته نه سمېږم
زما د ژوبل زړۀ ارمانه حق حېران دې کړمه
اغیاره هر څۀ دې تالا کړل بس دے درومه کنه
غواړې نور څۀ د پښتونخوا نه حق حېران دې کړمه
زۀ خپل کچه کور کښې په ویښه دا دے شپې تېرووم
تا سره څۀ اوکړم بارانه حق حېران دې کړمه
چې د پښتون وینه بهېږي ولې نه دردېږې
ګرانه وطنه پاکستانه حق حېران دې کړمه

دا چې لاسونه غوَرَوَې ځان سره خاندې، ژاړې
په تا څۀ چل دے شعیب خانه حق حېران دې کړمه

پردي وطن کښې خو هر چا ته کلے کور ياد يږي
هم ورته خپل بابا ياد يږي هم ئې مور ياد يږي

هم ئې په زړۀ وي د خوږو ورونړو خوږې خبرې
هم ورته توقې مسخرې د خپلې خور ياد يږي
د چا وربرې په زړۀ تل د ماشومانو مينه
چا ته شيرينه وي د خپلو وړو مور ياد يږي
چا ته د کلي مازيګر او د يارانو محفل
چا ته د مستې ليلې ډکو لپچو شور ياد يږي
داسې ياد يږي د وطن هر يو ساعت بنده ته
لکه بُوډا ته چې دځوانو متو زور ياد يږي

په ما شعيب هم زوروره ده د خپلو مينه
ډير راته پلاريادېږي ډيره راته مور ياد يږي

يو-اے-اي---٢٦-٠٣-٢٠١٣

د کلي ژوند ساده وختونه څومره خوند وو پکښې
هغه حجرې او ګودرونه څومره خوند وو پکښې

هغه په غرونو کښې اٰواز د یاقربان د زلمو
هغه د جُونو جوابونه څومره خوند وو پکښې

ژوندون د مینې، محبت او ورورولئ نامه وه
نه وې کینې نه نفرتونه څومره خوند وو پکښې

څهٔ په ډاډه زړګي به تلمه زهٔ د ښار په لوري
نهٔ د مرګ یره نه بمونه څومره خوند وو پکښې

یوې ابیٔ ته یو بابا د کلي لار کښې وئیل
ستا اداګانې او نازونه څومره خوند وو پکښې

هغه چې تا به وئیل وار اوکړه درځم شعیبه
هغه زما انتظارونه څومره خوند وو پکښې

★★★

د مینــــې محبــت کوومــــه کــــر چــې چرتــــه ځــم
هــم دغــه مــې روزګــار دغــه هنــر چــې چرتــه ځــم

ډ ېــر لــر کلـي کښـې ووسـمه پـه غرونـو کښـې ملګـرو
پــاځم د مُــلا بانــګ ســره ســحر چــې چرتــه ځــم

چــې اوس بــه راښــکاره شــې ګلــورینې پــه دې طمــع
نظــر مــې وي د ســتا د کــور پــه ور چــې چرتــه ځــم

ګرانــۍ نــه بــې امنــۍ، بــې روزګــارۍ نــه اے ملګـرو
هــر کــس د ے پــه ژړا پــه غوغــا ســر چــې چرتـه ځــم

نــن ووې یــو پښــتون پــه بــې وســۍ چــې هېـڅ بـې هېځـه
دا خلــق مــا بــولي پــه ترهــه ګــر چــې چرتــه ځــم

ښکل مي کړي، راجخت مي کړي، شي سر په دعاګانو
چــې مــور نــه اجــازت اخلــم بهــر چــې چرتــه ځــم

داسې کم ساعت دے چې مې هېره ئې
تۀ مې د خپل ځانه ژوند کښې ډېره ئې

هسې خو د ښکلیو نړۍ ډکه ده
تۀ راته د ټولو نه راتېره ئې

اووایه چې ته د څومرو کالو شوې
څومره ئې اوچته څومره سېره ئې

زۀ دې هم محبوبې خپلوے نه شم
ستا هم مجبوري ده ته هم ګېره ئې

نن ئې وئیل پوې به شي په ما خلق
تۀ شعیب مې سترګو کښې برسېره ئې

# مورنۍ ژبه

يه ځوانه...
داڅۀ کوې..
پرېږده دا بابا له ګرېوانه
ځوانه په څۀ غصه ئې
اخر دا څۀ چکر دے
باباجي ته اووايه
دا ځوان غصه ولې دے
بابا ګويانه شولو
بچے دې ځوان زلمي چې
يم د ګرېوان نيولے
دا ئې په دې وجه چې
نن وو پنجاب ته تلے
چا ترې تپوس کړے دے

ته د کوم ځائے ئې ځوانه
دۀ ورته اووئیل چې
د پېښور یمه زۀ
هغه ترې بیا اوپوښتل
تۀ وایې کومه ژبه
دۀ ورته ډېر په فخر
اووې پښتون یمه زۀ
هم هغه کس سره وو
د ستر خوشحال یو کتاب
ورته ئې ډېر په مینه
اووې چې دا اولوله
دې کښې ئې څۀ لیکلي
د خوشحال خان په حقله
ما اوربدلي ډېر څۀ
ځوان کتاب واغستلو
پاڼې ئې واړولې
خو ډېر تېټ سترګے شولو
چې ئې په ټول کتاب کښې
د سترخوشحال د نوم نه
بغېرڅۀ نه شو لوستے

نو هغه کس ورته ویل
د خوشحال خان نامه خو
زۀ هم لوستلے شمه
تۀ اخر څنګ پښتون ئې
چې مورنۍ ژبه دې
هډو لوستلې نه شې
ځوان اوس نیولے یمه
زۀ د ګرېوانه په دې
چې زۀ پښتو لوستے شم
ژبه پښتو لیکے شم
خو ما دې ځوان زلمي ته
دې نوي کهول د پاره
په تعلیمي نظام کښې
داسې څۀ نه دي کړي
چې ګني زده کړي پښتو
چې پښتو اولیکے شي
چې پښتو اولوستے شي
دا ځوان په حقه دے چې
ما د ګرېوانه نیسي
خو بچے ته هم واوره

چې راروان کهول ته
تعلیم د ژبې ورکړه
د پښتو ژبې تعلیم
ګنییو ورځ به تا هم
لکه زما په شانې
چرته یو ځوان زلمے
د ګریوانه اونیسي..

---

## خبرې

---

ناسته په تولګي کښې د درنو کوه
واره کاره یاره د سرو کوه
نورو سره نورې ژبې وایه خو
ما سره خبرې په پښتو کوه

زړهٔ چې بيمار شي نو د يار د ديد علاج غواړي
ظلم چې زور شي نو ملګرو احتجاج غواړي

په نفرت نهٔ خپلېږي زړونه مينه دې شي
څوک چې د نورو خلقو زړونو باندې راج غواړي
زما غندل غندل ځواني خاؤرې ايرې شوه لاړه
ظالمان خلق مې د مور او پلار نه داج غواړي
اول د سر امان پکار دے هر سړي ته دلته
ددې نه روستو بيا مکان غواړي اناج غواړي
يو ئې بې کوره کړم، بل خاؤره مې لمبې لمبې شوه
څومره به نورې قربانۍ د وخت سامراج غواړي
هغه چې نخښې د پښتو، پښتونولۍ نهٔ لري
د خپل کلتوره ختمول دغه رواج غواړي

د خپل شعيب د بې وسۍ نه بې پرواه ګلالۍ
ترې نه د سرو زرو دُورُونه غواړي، تاج غواړي

★★★

زړګے به مې محبوبې د بل چا سندرې وائي
تا باندې شيدا دے بس هم ستا سندرې وائي

د ښار څۀ ګاونډ توب دے که وي يو کور کښې ماتم
په بل کور کښې غړېږي ډول سُرنا سندرې وائي

حجره کښې محفلونو کښې که زۀ وايم غزلې
نو کلي کښې ودونو کښې ليلى سندرې وائي

بې شکه چې هغه سړے دے خوب باندې اُودۀ
چې هېر ئې اٰخرت وي د دنيا سندرې وائي

ټکور مې خوږ زړګے کړي دومره ښې را باندې لګي
چې څوک هم د پښتو د پښتونخوا سندرې وائي

همزولي ورته ووې نو حېرانه شوه وئيل ئې
تر اوسه ليونے شعيب زما سندرې وائي

★★★

بس دے د رومان غزلې نه ليکم
نورې په جانان غزلې نه ليکم

بيا خو به شاعر نه شومه ګلې چې
زه په دې دوران غزلې نه ليکم

پېغلو د سرو شونډو غور څولے دے
څکه په پېزوان غزلې نه ليکم

زه خو مې خپل وران کالۀ شاعر کړمه
څنګ به په کور وران غزلې نه ليکم

دومره خود سر نه يم چې بل نۀ وينم
زه صرف په ځان غزلې نه ليکم

زه هم ستا هَمخياله يم شعيبه خو
زه د ستا په شان غزلې نه ليکم

★★★

لار دې کړه زما ځنې جدا بنـه دې او نـه کـړل
کړمـه دې اول غونـدې تنها بنـه دې او نـه کـړل

تـا اول پخپلـه بنـه پـه مینـه وو راکـړي
وادې غسـت لاسـونه رانـه بیـا بنـه دې او نـه کـړل

یـو خـوا دې اغیـاره ورور دے ورور سـره وران کـړے
بـل خـوا دې لمبې کـړه پښـتونخوا بنـه دې او نـه کـړل

مړ دې د مور غیږ کښې کړو ماشوم چې ترهه ګر دے
دومـره ظلـم دومـره ناروا بنـه دې او نـه کـړل

ډېـر یتیمانـان او ډېـرې کونـډې ترهـه ګـړه
ژاړي تـورو شـپو کښـې تـر سـبا بنـه دې او نـه کـړل

ورکـړو د بـل لاس کښـې تـا زمـا د پـوزې مهـر
یـه د وخـت حـاکم د وخـت باچـا بنـه دې او نـه کـړل

دسترګو تور د زړۀ ټکوره یاره
کله نا کله خو راګوره یاره

زۀ پښتنه پېغله یم ضد مه کوه
دروتے نۀ شمه د کوره یاره
لا خو دې نور نازونه هم اوړے شم
پرېوتې نۀیم له د زوره یاره
کلي ته ځمه چې لږ ساه صُورت شم
ښار کښې تنګ شوےیم د شوره یاره
چرته خو راشه دیدن راکړه کنه
زما په ذهن، فکر سوره یاره
پښتون ته ګوره چې په شته وطن کښې
کډه په سر ګرځي بې کوره یاره

پلار نه دعا اخلم چې عرش ته رسي
هم دعا اخلمه له موره یاره

★★★

دلتـــه د ســر امـــان خــو شـــته د ے کنـــه کــور تـــه مـــه ځـــه
پردیس کښې ښهٔ ئې پښتونخوا کښــې اور د ے اور تـه مـه ځـه

ځـهٔ چـل خـو شـته خپـل پېښــور تـه پـلار بچــے نـه پرېـږدي
دې نــه ئــې نــه منــع کــوي چــې تــه لاهــور تـــه مـــه ځـــه

مــور مــې وئیــل ښــار تــه خــو ځــې خــو ګــورې دا مــې واوره
چرتـــه چـــې ګنهـــه وي د خلقـــو هغـــې لـــور تـــه مـــه ځـــه

د اوســـــــني دَوَر زلمیـــــه جُونـــــا کــــــور ناســـــتې دي
تـــه اورېـــدو تـــه پـــه ګـــودر د جُونـــو شـــور تـــه مـــه ځـــه

زړهٔ کښـــې دې غـــلا د ښـــکلو چـــم تـــه د تـــګ شـــته شـــعیبه
خـــو ټینـــګ بـــه نـــه شـــې تـــه د نـــاز او ادا زور تـــه مـــه ځـــه

★ ★ ★

د کلـــــي خلـــــق د یـــــو لاړ خلـــــق دي
دا بـــــازاري خلـــــق مکـــــار خلـــــق دي

هـــره ګرهــــۍ مـــري پـــــه ســـوونو خلـــق
ډیـــر پـــه خطرکښـــې د دې ښـــار خلـــق دي

راز د وطـــــن د ترقـــــۍ وي دې کښـــــې
ډیـــر پـــه روزګـــار کـــه بـــې روزګـــار خلـــق دي

مشـــر ئـــې نـــۀدے هـــر څـــۀ هـــر څـــۀ خلقـــه
دۀ ســـره نـــور هـــم ډیـــر د کـــار خلـــق دي

پـــه مـــونږه ټولـــو کښـــې بهتـــر دي هغـــه
چـــې پرهیزګـــاره، تقـــوي دار خلـــق دي

څـــۀ چـــل خـــو شـــته ملګـــرو هســـې نـــه ده
دومـــره مئـــین چـــې پـــه دلـــدار۱ خلـــق دي

چې پښتونخوا کښې هر خوا امن راشي
د هغې ورځ په انتظار خلق دي

حالات که هر څنګه وي ژوند کوي خپل
پښتانه چا وې چې د ډار خلق دي

دا اوسني خلق دوه ژبي خلق
شعیبه کله د اعتبار خلق دي

۱۔ دلدار علي شاه زما لکه د مشر ورور او خوږ ملګرے چې په ۲۶-۰۹-۲۰۱۳ په ماښام ئې د دې فاني دنيا هجرت اوکړو۔

★★★

راتــه پرتــه ده پــه هــر خــوا مســئله
حــل کړمــه دا او کــه نــه دا مســئله

چې وي د نــن کــار خلقــه نــن ئې کــوے
هســې نــه شــي درتــه ســبا مســئله

بهــر چــې لاړ شــم نــو بلهــا مســئلې
کــور تــه چــې راشــم خامخــا مســئله

خپلــه وړه مســئله لويــه ګڼــي
وړه ګڼــي لويــه زمــا مئســله

داسې ښــکاريږي چــې زمــا وي ســکوته
خلقــه چــې وي د پښــتونخوا مســئله

اشــنا چــې راشــي پــه رپــا شــې يــک دم
شــعيبه حــل دې نکــړه دا مســئله

★★★

لــه بــې وســی رانــه جانــان پــاتې دے
پــه زړۀ مــې دغــه یــو ارمــان پــاتې دے

ګتــه خــو تولــه یــاره تــا یوړلــه
زمــا پــه برخــه خــو تــاوان پــاتې دے

لا خــو وَړه ده پــه لــړزان ئــې کــړو تــول
لا خــو د حُســن ئــې دوران پــاتې دے

دي هــر یــو تــن ســره بلهــا غمونــه
بــچ لــه غمونــو کــم انســان پــاتې دے

لمــن ئــې پرېښــې د اســلام ده ځکــه
نــن پــه نړۍ کښــې مســلمان پــاتې دے

کـه شـوه پـه عقـل نـو کېـدے شـي بنـۀ شـي
کـه پـه قسـمت شـوه شـعيب خـان پـاتې دے

★★★

شم به په کلي کښې رسوا دلبره
تهٔ که زما نهٔ شوې په شا دلبره

تیارې به اوتښتي چې غم اونهٔ کړې
رابه شي ژوند کښې مو رڼا دلبره

که وي وزیر که وي باچا د وطن
پېرزو مې نه شې په هېچا دلبره

چې مې د زړهٔ غمونه لرې کړي ټول
نن شه له ورایه په خندا دلبره

اوس خلق تور دي لکه سکور په زړونو
خلق سپین زړي وُو پخوا دلبره

شعیبه څهٔ کوې د ډېرې مودې
ناسته په نوم یمه زهٔ ستا دلبره

اوچتــه مرتبــه ده اوچــت شــان د پښـــتنو
مثــال چرتــه کښــې نشــته پــه جهــان د پښـــتنو

د هــر اړخ نــه کېــږي پــرې ظلمونــه خــو افســوس
پــه خــوب بانــدې اُودهٔ دي مشــران د پښـــتنو

خراب کــه دي حالات پــه باجوړ کښــې پښـتانهٔ دي
د ے ســوات د پښــتنو، وزیرســتان د پښـــتنو

د وخــت د ثالثــانو منصــوبې خــو داســې وائــي
صــفا بــه کــړي ډېــر زر دا پاکســتان د پښـــتنو

یــه خدایــه کــړې پېــدا پکښــې یــو بــل داســې اتــل
دا څنګــه چــې اتــل وو باچــا خــان د پښـــتنو

بيـــا را کـــه شــي خبــره د عاشـــق د معشــوقې
ليلـــى د پښـــتنو وايـــه جانـــان د پښـــتنو

شــعيبه د نــړۍ قامونــه واړه کــه يوځــائے شــي
شــه ځــار د پښــتنو او شــه قربــان د پښــتنو

## ګلستان ته

افســوس چــې ګلســتانه تــه مــې بــل د پــاره اوســوې
لمبــې مــې کــړې پــه تــا بانــدې د هــر طــرف نــه بلــې
زۀ څــومره پــه چــل ول کړمــه اغيــار د ورور بدظنــه
مــا کړلــې پــه پردي جنــګ کښــې تــل خپلــې وينــې تلــې

# ټوپک

زۀ هم اغيار ګرمووم
تۀ هم په جار باندې
اغيار ته ګوته نيسې
چې دا زمونږ ورو ته
لاس کښې قلم نه پرېږدي
لاس کښې ټوپک ورکوي
منم هم دغسې ده
خو هسې خپلو کښې يو
يوه خبره کووم
مونږ خپله هم ورو ته
چې کله لوبې کوي
ورته ټوپک اخلو

په خپلو ګټو او فائدو پسې ځي
نن سبا خلق په پیسو پسې ځي

څوک ډیوه لاس کښې د رڼا په تکل
څوک دي روان په تورو شپو پسې ځي

نصیب ئې مۀ شه د خپل کور خوشحالي
څوک چې د بل کور ورانوو پسې ځي

پتنګ همېش له ځي د شمعې په لور
چا ویل چې شمع پروانو پسې ځي

خوشحالۍ وارہ ترې نه لرې تښتي
غمونه وارہ پښتنو پسې ځي

نن سبا وخت دے د دانا و خلقو
شعیب نادان دے لېونو پسې ځي

کله بم چَوي کله ډزې په بازار کېږي
ځکه د هر سړي د بل سړي نه خار کېږي

چا وړپه ګوته کړو پښتون په څۀ خطا ملګرو
چرته چې کېږي هم په دۀ باندې ګوزار کېږي

هغه سړي ته خلق سپک ګوري خو نه پوهېږي
چې اوښيار نه وي خو هرځائے اوښيار اوښيار کېږي

هرې خبرې کښې ته زړۀ مه وهه شک مه کوه
بعضې خبرو کښې توکل کېږي اعتبار کېږي

نن راته اووې چوکيدار د فلاني ځائے په غوږ کښې
چې هم تعلق وي هم پيسه وي دلته کار کېږي

تـهٔ چـې وعـده د راتلـو اوکـــړې نـو تـه څـهٔ خبـر ئـې
خـدائـېـګو کـــه مــا نـه يـو ساعت تـه انتظار کېـږي

شعيبه ته مې هم په روح کښې شامل شوے ئې اوس
خـــلق رښـــتيا وائـــي د زړهٔ نـــه زړهٔ تـــه لار کېــږي

## راځئ

راځـــئ چـــې د غمونـــو د ظلمونـــو مـــخ نيـــوے اوکـــړو
راځـئ چـې خوشـحالۍ دې خپـل ويجـاړ کلـي تـه راولـو
بـس ډېـر مـو د خـزان سـپېرو بـادونو کښـې ژونـد اوکړلـو
راځـــئ چـــې پسـرلے دې خپــل ويجــاړ کلــي تــه راولـــو

★★★

زما پـه زړۀ زمـا ځيګـر کښې اوسـې
لاليـه تـه مـې پـه نظـر کښـې اوسـې

وهـم بـه تـا پسـې غـوپې جانانـه
رانـه کـه پـټ پـه سـمندر کښـې اوسـې

تـا پرهرونـه دي پـه زړۀ راکـړي
تـه مـې د زړۀ پـه هـر پرهـر کښـې اوسـې

راشـه د امـن چـم لـه راشـه ګلـه
ښار کښې چې اوسې نو په شر کښې اوسې

پښتونه تـا بانـدې شـېدا يمـه زۀ
تـه کـه کابـل کـه پېښـور کښـې اوسـې

شعيب ته ګران دي واړه ستا د مخه
تـه چې کـوم کلي کـوم ټبر کـښـې اوسـې

★★★

لېونو په شانې ګرځم نن سبا کلي په کلي
لټوومه چرته نشته دے وفا کلي په کلي

کليوال کمزوري نه دي د ښاروالو نه په څۀ کښې
خو خوره که د تعليم شوله رڼا کلي په کلي

دا زمونږ د کلي درُومي د ښاريو په لوري خلق
که راغلې ده ملګرو دا وبا کلي په کلي

د دروغو ځان ساتے چې دا اباد کلي تالا کړي
خوروم به دا خبره خامخا کلي په کلي

که شپه ورځ ورپسې يو کړم په لټون ورپسې ګرځم
نشته بل کښې ستا په شان چرته ښکلا کلي په کلي

چې د خپل د لاسه نه شي خلقه هغه تن به نه شي
چم په چم باندې بدنامه او رسوا کلي په کلي

★★★

د هر چا خپل فکر دے خپل سوچ دے
زما بدل دے ستا بدل سوچ دے

ستا هيڅ اميد د ترقۍ نشته
ياره پرېږده د ستا خوشل سوچ دے
چې کړو بدل د ګل وطن حالات
زما د ټولو نه اول سوچ دے
خدايه په څان کړې هغه ټول خلق
چې ئې د شر او د غوبل سوچ دے
ډېر زورور لري قلم اجمل
بې حده ښکلے د اجمل سوچ دے
هر څوک خپله باچا خان نشته
خو تل ژوندے د دې اتل سوچ دے

شعيب ساده دے کليوال دے خو
څه ډېر ژور ئې د غزل سوچ دے

ویــر د ےاو ژړا ده د خنــدا هــډو نامــه نشــته
کلي کښې زموږ سپرلیه ستا هډو نامه نشته

شک مه کړه په ما چې ګنې بل سره کووم مینه
زړۀ کښې زما ګلې د بل چا هډو نامه نشته

هغه کس کامیابه د ے چې کار پوره کوي په وخت
ژوند کښې چې ئې خلقه د "سبا" هډو نامه نشته

وو چې تول وفا وفا نن هغه خلق چرته دي
نن سبا خو عشق کښې د وفا هډو نامه نشته

اوکړه یو ماشوم د خپل بابا نه دا پوښتنه چې
دې تورو تیارو ته د رڼا هډو نامه نشته

ما خو د خپل زړۀ په سر بس ستا نامه لیکلې ده
یه شعیبه ستا زړۀ کښې زما هډو نامه نشته

★★★

نـــهٔ خـــو د طبیـــب نـــهٔ د دوا ســـره جـــوړېږي
پرهـــر مـــې د اشـــنا د یـــو مســـکا ســـره جـــوړېږي

والله که درست جهان کښې ئې زهٔ بل څوک ثاني وینم
دا ښـــکلې، حیاناکـــه پېغلـــه مـــا ســـره جـــوړېږي

هـم خپلـه ژبـه نـه شـي لـیکے نـه شـي لوسـتے خلقـه
دا حـــال د پښـــتنو خـــو د ژړا ســـره جـــوړېږي

پـه رُعـب یـا دبـدبې، سـړے پـه مـال نـه پـه دولـت
افضـــل پـــه انســـانانو د تقـــويٰ ســـره جـــوړېږي

زمـــا خبـــره اومنـــه انســـان ئـــې عـــاجزي کـــړه
خبـــرې د لـــویی خـــو د الله ســـره جـــوړېږي

د غم سره بلد شوم شوګیرو سره بلد شوم
اشنا د سوو سوو اسوېلو سره بلد شوم

یا ژوند کښې داسې ښکاري کړکېچونه ختم شوي
یا زۀ د ژوندانۀ د کشالو سره بلد شوم

زما د بې وسۍ، بد قسمتۍ انتها دا ده
چې بم سره بلد شوم دهماکو سره بلد شوم

د نوي کهول زلمي ګیله بې ځائې نه ده که وائي
چې زۀ خو نۀ ګودر او نۀ حجرو سره بلد شوم

نن اووې مسافر چې د نړې کلي مې هېر شُو
د کله نه چې زۀ قمرمېلو[1] سره بلد شوم

۱- قمرمېله زما د کلي نوم دے او قمرمېلو نه دلته مراد د قمرمېلې اوسېدونکي دي-

# خپل ګران باباجان ته

ډېـــر عزتمنـــــده قدردانـــــه بابـــا
مـــا تــه د خپلـــه ځانـــه ګرانـــه بابـــا
تـــا ډېـرې سـختې تېـرې کـړي پـه ځـان
تـــا دي نـــاکړدې ډېـــرې کـــړي پـــه ځـان
تـــا بـــه نـــهٔ ورځـــې او نـــهٔ شـــپې تـــه کتــل
بابـــا تـــا بـــس زمـــونږه ښـــې تـــه کتـــل
ســـتا دې خـــوارو او مشـــقت پـــه وجـــه
بابـــاجي ســـتا د محبـــت پـــه وجـــه
تـــهٔ کـــه وې خپلـــه در پـــه در بابـــا
خـــو مـــونږ اُودهٔ نـــه يُـــو بهـــر بابـــا
چې مې بچي ښکلے پېزار په ښپو کړي
ابـــى مـــې دې تـــه ژړېـــدلي ډېـــره
چې مې بچي ښـهٔ اوخوري ښـهٔ واغوندي
ابـــى مـــې دې تـــه زيرېـــدلي ډېـــره

مونږ څوارلس خويندې ورُونړه ګران بابا
ساتل ئې کار نه وو اسان بابا
خراب زمونږ وو ډېر حالات بابا
زمونږ يو ورور شولو وفات بابا
ډېرې په مونږه سختې شپې ورځې وې
خو ستا په وجه په مونږ ښې ورځې وې
تا ته به مونږ اووې روپۍ راکړه
تا به وې نن د روپۍ مور مړه ده
مونږ به چې مم اوغوښتو تا به وئيل
د دوکاندار نن بچے مور مړه ده
ستا بې وسي وه ستا نه ځار بابا
خفه به نه شُو په انکار بابا
چې شُو مې ورونړه لږ راځوان کله
تۀ ساه صورت شوې باباجان هله
دا څو خبرې وې د تېرې مودې
اوس به د نن سبا په حال راشم
تا به چې څۀ رنګې غوښتل بابا
زمونږ حالات دي نن بدل بابا
نه ګرځم زۀ نن په زړو څپلو کښې
نشته تېکړي د مشر ورور جامو کښې

نه مو روپۍ ته اوس واړه زیرېږي
نه مې څۀ فرق شته نن د خور جامو کښې
زۀ د قلم په ژبه ګرانه بابا
تا تا خبرې څو کول غواړم
هغه خبرې تا نه پټې نه دي
خو زۀئې دلته کښې لیکل غواړم
لکه د هر یو پلار په شانې بابا
ته هم په ما فخر کول غواړې
ته د یارانو په محفل کښې بابا
زما صفت هم اوریدل غواړې
ستا یو ارمان دے په ما ګرانه بابا
چې زۀ کتاب د شاعرۍ اولیکم
پکښې په تېره تېره ګرانه بابا
حال د پښتون د زندګۍ اولیکم
ستا بل ارمان دے لیکچرار شمه زۀ
بابا ستا هر ارمان نه ځار شمه زۀ
خو بې وسۍ او غریبۍ د لاسه
زۀ مسافر یمه وطن کښې نه یم
ستا هر ارمان پوره کوو د پاره
زۀ په خپل چم په خپل ګلشن کښې نه یم

که زهٔ پیسې اوګټم ډېرې بابا
ته په پیسو فخر کولے نه شې
که درته جوړ کړمه محل د زرو
ته په بنګلو فخر کولے نه شې
خوښوې ته نه د نمود زندګي
ته خو د مینې محبت اوږے ئې
بابا جان ښهٔ راته معلومه ده چې
ته د پېسو نه د عزت اوږے ئې
بابا تر څو چې در په دریمه
تر څو چې دلته مسافر یمه
تر هغې ستا هر یو ارمان نیمګړے
دغه بچے ستا شعیب خان نیمګړے
بابا د پلار دعا خو عرش ته رسي
ما ته دعا کوه ښهٔ ډېره بابا
چې په خپل چم په خپل وطن شتهٔ شم
دغه دعا نهٔ کړې ته هېره بابا
کله چې ستا هر یو ارمان پوره کړم
زهٔ به هلې نیمګړے ځان پوره کړم

لـړې شـان خبـرې راتـه د يـرې شـي
اوسـوځم لمبـې رانـه چـاپېرې شـي

تېـر چـې شـي دوران نـو بېرتـه نـهٔ راځـي
د يـرې زمـانې کـه راشـي تېـرې شـي

کـړې راتـه رايـادې تېـرې شـپې ورځـې
اونـه کـه د تُـوت شـي کـه د بېـرې شـي

ذکـر چـې محفـل کښـې د هغـهٔ اوشـي
سترګو کښې مې اوښکې رابرسېرې شي

د يـرې پښـتنې خپلـې مرضـۍ خـلاف
خلقـه د وادهٔ تـړون کښـې ګېـرې شـي

نـن سـبا شـعيبه محبـت کښـې چـې
نـوې ليلـى جـوړه زړې هېـرې شـي

چې مرګ ئې ياد وي غم د قبر کوي
هغه به څنګه په چا جبر کوي

اغيار مې ځانګې د وجود پرېکوي
ګزار پرې هره ورځ د تبر کوي
هر څۀ لرې خو بيا هم ژاړي قسمت
دا بعضې بعضې خلق کبر کوي
تر څو به تږې وي زمونږه زمکه
پېښه به دلته کله ابر کوي
په ژوند خو پرېږده خلق مرګ نه پس هم
فرق د امير غريب د قبر کوي
چې زما نوم اخلي په خله ګلالې
خيال د هر ټکي، پېښ او زبر کوي

شعيبه خوښ مې دي هغه خلق چې
د خدائے په ورکړه شکر، صبر کوي

وایه د خپل زړۀ د پردو پرېږده
خبره مۀ کوه د تلو پرېږده

تۀ د ګلونو په بستر ښۀ ښکارې
ما په خپل حال په دې ازغو پرېږده
چې رانزدې نه شې جانانه ما ته
وجود مې ټول په رېږدو پرېږده
کوم خوا چې ګورمه تیارۀ ښکاري
چرته خو لار د پلوشو پرېږده
پرېږده تازه تصویر زما په زړۀ کښې
غوږ کښې مې شړنګ د شنو بنګړو پرېږده
چې پښتو سپکه ګڼي نه ئې وائي
ذکر د هغه پښتنو پرېږده

که ئې پرېږدې نو یک دم نه ګلالۍ
زما لمنه په رو رو پرېږده

د بل په خوښه باندې ژوند کړُو نو ښاد چرته کېښې یُو
مونږ په رښتیا معنو کښې ګله ازاد چرته کېښې یُو

ډېرې مُودې نه راپسې دي هلته شر خوروي
مونږ پښتانهٔ چې اے ملګرو اٰباد چرته کښې یُو

مونږه همېش قربانې ورکړُو خو ظالم سماج ته
مونږ د ستائنې، شاباشې وخت کښې یاد چرته کښې یُو

هره لمحه ئې یادُو، هره لمحه ئې ستایو
چې مسافر مونږه د ګل ګل هیواد چرته کښې یُو

شعیبه مونږه ئې سینه شلولې مخکښې لاړ یو
چې مخالف مونږه راغلې د باد چرته کښې یُو

★★★

لــړ پــه مــزه شــه لــړ پــه رو راشـــه
د جانـــان غمـــه پـــه دمـــو راشـــه

زلفــې خــورې شــونډې دې ســرې کــړه ګلــې
ســترګې کــړه تــورې پــه رنجــو راشــه

چــې مــې راغلــے جانــان پــاتې شــي نــن
بارانـــه راشـــه پـــه شـــېبو راشـــه

خــدا ے خبــر ســتا بېګــا بــه کلــه راځــي
ســترے شــوم زۀ پــه شــوګيرو راشــه

د نـــورو ژبـــو پـــه وېنـــا کـــړي فخـــر
د نـــوي کهُـــول پـــه پښـــتنو راشـــه

زمـــا د تـــورو تيـــارو ژونـــد لـــه اشـــنا
لکـــه د نمـــر د پلوشـــو راشـــه

زۀ په پښتو مئين يم، په پښتنو مئين يم
هم په ورو، ځوانانو هم په زړو مئين يم

چې په خپل قام او وطن قربانوي سرُونه
زۀ د هغو نه قربان، زۀ په هغو مئين يم

د ستر افغان په ننګ ئې چې وتړله تُوره
د ستر خوشحال په شانې په ننګيالو مئين يم

ځار شم له دې روايت چې احمد شاه باچا شو
زۀ د شيرشاه په شانې په مېړنو مئين يم

څوک د مجنون لېونے د چا ليلى خوښه ده
ما ته اٰدم راتېر د ےزۀ په درخو مئين يم

زۀ شعيب ويارِ کرم ځکه خلقه په خپله مينه
چې ئې تاريخ ګواه د ے په توريالو مئين يم

ګلې د ستا مینه پاګله مینه
په ټولو مینو کښې اوله مینه

چې راته هیڅ نه لګي مینه د بل
دومره دي څۀ له راکوله مینه

زمونږ په سیمه مینه راج کوي تل
ستاسو په چم کښې همېش شله مینه

که وس مې وے ما به نفرت ختموو
ما به په هر یو لور وېشله مینه

بس یوه مینه شي د ژوند سرمایه
هسې خو کېږي څو څو ځله مینه

شوله ګویانه په غزل شعیبه
تا که هر څومره پټوله مینه

د دید قحطي شوه مور مې وائي چې ګودر ته مه ځه
بابا مې هم وائي اوس لويهئې بهر ته مه ځه

د تور قمیص غوښتنه نه کوي د بم د یرې
ما ته مې خپله ګوډۍ وائي پېښور ته مه ځه

ډیر بې ضمیره دي خوشحاله د لمبو په مېنځ کښې
بل ته هم وائي چې د سرو ګلونو کر ته مه ځه

زړۀ که دیدن د هغې غواړي نو دا هم وائي
که د هغې عزت کوې د هغې ور ته مه ځه

که څۀ غوښتنه کوې اوکړه د الله د در نه
بې د الله نه ګورې واوره د چا در ته مه ځه

ډېره موده پس ئې راغلے ته د کلي په لور
شعیبه ورځې یو څو تیرې کړه سحر ته مه ځه

یاره که پخلا شي ښۀ به ډېره وي
غېږې ته که راشې ښۀ به ډېره وي

بې له تا نه ژوند دے په لمبو کښې ژوند
ګلې که زما شې ښۀ به ډېره وي

اے غمه بس دومره یاري ډېره وه
ما نه که جدا شې ښۀ به ډیره وي

نور به زړۀ کړم صبر ستا د چم څنې
هسې نه رسوا شې ښۀ به ډېره وي

اے د امن باده که ته زر غوندې
را په پښتونخوا شې ښۀ به ډېره وي

سره ډولۍ کښې ناسته د هغه کور کښې
خوبه که ربښتیا شې ښۀ به ډېره وي

چې په محفل کښې شاعران ناست وي
د وخت ډېر ښهٔ ترجمانان ناست وي

نشته هغو له د ټوپک څهٔ حاجت
چې ئې په مېنځ کښې مشران ناست وي

څومره په غور د مور اونیا قیصو ته
ښکلي ګلونه ما شومان ناست وي

خدائے خبر زړهٔ کښې به ئې څهٔ څهٔ راځي
چې ځوانان کار کړي بوډهاګان ناست وي

ویل ئې همزولو ته د ډېره شرمه
نه ځم چې چرته شعیب خان ناست وي

شعیبه شته دے چې قابل ئې نه دي
خو په کرسو لکه خانان ناست وي

ښار کښې چې شر کېږي او شور کېږي
ځکه مې زړۀ کلي په لور کېږي

غریب به څنګ نه وي د حق محروم
دلته هر کار پیسې په زور کېږي
چې وس لري، هغه سپین باز ګرځي
خو بس بې وسو ته پېغور کېږي
چې ډېر مجبور شي نو وطن پرېږدي
وللّٰه که زړۀ د چا له کور کېږي
خوشحالي هم ده خو خفګان هم دے
چې مې وادۀ د خپلې خور کېږي
خدایه پښتون به لړ دمه هم شي
که ازمېښتونه به پرې نور کېږي

خدایه زما سره چې مل وي ایمان
چې مې سفر په لور د ګور کېږي

چې سرۀ زر نه وي ځلېدلي ولې
زما د زړۀ کور ته راتللي ولې
رانه دي تولۀ پښتونخوا يوړه
اسمانه دومره ورېدلي ولې
نه چرته اورمه ګودر کښې غوغا
نه په حجره ټپې، غزلې ولې
راشه زما د زړۀ تالا ګلشن له
سپرليه داسې رانه زغلې ولې
که دي پردي غمونه نه کولے
ختک[1] زر به زړېدلي ولې
کۀ ګام په ګام ورسره تلے شعيبه
وخت به څپېړي درکولي ولې

۱- د ختک نه دلته مراد د ختکو قبيله ده چې مدام پردي غمونه کوي. او په دې وجه زر زړېږي-

# بدلون

ګلې چې غم اونه کړې

د ستا په اوچو شونډو به زر مسکا خوره شي

زۀ په خپل ګل وطن کښې

د بدلون نخښنه وينم

د بدلون دا نخښنه چې

ګلې زمونږ د کلي

ټول مزدورکاره بې سَواده خلق

خپله د هارۍ غرمې په ځان تېروي

خو د روښانه مستقبل د پاره

خپل واړه لُوڼه زامن سکول ته لېږي

بد مې هغه لګي چې ګټې ځائے ته ځان اوباسي
خو د تاوان په وخت همېش ځان د تاوان اوباسي

زۀ ئې حېران شم حوصلې ته ورته داد ورکووم
څوک چې پخپله جنازه د خپل ارمان اوباسي

دا ګودرونه چې خالي دي هسې نه دي خالي
دلته اوس ټول خلق کورونو کښې ګُوويان اوباسي

خاني ئې ختمه ده پخوا خو اوس ئې هم سپکوي
خدائے خبر کله به شاعر، خُله د دې خان اوباسي

مونږه به څۀ په مخکښې لاړ شُو چې د قام زلمي مو
د پردو ګاډو سره خوا کښې تصويران اوباسي

څۀ که ئې واغستل لاسونه په اسانه زما
ډېره په ګرانه به د زړۀ نه شعيب خان اوباسي

★★★

د چا سر نه وي، د چا ښېږې، د چا لاسونه توبه
مرګ په نښته دے خو دا نن سبا مرګونه توبه

دا چې د خلقونه سرونه پرېکوي لګیا دي
سینه خالي لري که کانیئې دي زړونه توبه

اغیار زما د وړو ګوتو کښې قلم نه غواړي
راته ئې والوځول ځائے په ځائے سکولونه توبه

په غلط کار د امیرغلي وي د سیلمي خلق
په غلط کار غریب ته رنګ رنګ پیغورونه توبه

شعیبه یو ساعت چې هم د سر امان نه لري
داسې ماحول کښې، چاپېرچل کښې د ژوندونه توبه

★★★

اوس مـې زنـدګي همزولــو ګرانـه شــوه
خپلـــه ګلالـــۍ راســـره ورانـــه شـــوه

ګـــوره کــه ئـې زړۀکښـــې رحـــم راغللـــو
ګـــوره کـــه پـــه خپلـــو کـــړو ســـتومانه شـــوه

ورانـــه کـــه زمـــا د زړۀ دنیـــا شـــوه خـــو
ځـــه د بـــل د زړۀ دنیـــا ودانـــه شـــوه

هـــر خـــوا تـــه بهیـــږي د اُوبـــو پـــه شـــان
وینـــه د پښـــتون څـــومره ارزانـــه شـــوه

بیـــا بـــه واړه غـــواړي د اختـــر جـــامې
ځـــار بـــې وســـه مـــوري پریشـــانه شـــوه

پنـــد ئـــې د یـــادُونو در پـــه ســـر شـــولو
ګرانـــه درتـــه ډېـــره شـــعیب خانـــه شـــوه

اٰه مــې د زړۀ، فريــاد پــه خلــه راځــي
بيــا هــم جانــان تپــوس لــه نــه راځــي

څــۀ پــه جُوپــا او پــه خنــدا مســخرو
لرګــي پــه ســر پېغلــې د غــرۀ راځــي
بارانــه لــږ ورېــږه ډېــر چــې نــه شــې
زمــونږ د چــت څنــې اُوبــۀ راځــي
د مــزدور ګټــه دومــره کمــه ده چــې
نــه پــرې د کــور غــوړي نــه اوړۀ راځــي
پېښــه ســپرلے زمــونږ پــه ســيمه نــه کــړي
د بــل پــه ســيمه بانــدې ښــۀ راځــي
پښــتون هغــه دے چــې مېلمــه ورشــي
نــو پــه تنــدي ئــې کرښــې نــۀ راځــي

کــه شــې مســکے زمــا د زړۀ د پــاره
شــعيبه ســتا وربانــدې څــۀ راځــي

ستا د ښائست ستا د ښکلا خبرې
زما په خله وي بس د ستا خبرې

مه کړه د تلو خبرې کښېنه واوره
لا خو په زړهٔ مې دي بلها خبرې

پام کوه یاره د دروغو زور دے
کمې کوي خلق رښتیا خبرې

زما به نه شې اے زما دلبره
ته کړه منې د دې دنیا خبرې

چا راته وې صرف په ما نه لګي
په تا هم ښې لګي زما خبرې

څوک لېونے څوک ئې کم عقل ګڼي
شعیبه کړې چې څوک صفا خبرې

★★★

ژونـد کـه بـې لـه تـا نـه تېرېـدلے شـومره ښـهٔ بـه وه
زړهٔ ظـالم کـه تـا نـه صبرېدلے شـومره ښـهٔ بـه وه

دا چـې پسـرلے مـدام د بـل کلـي پـه لاره ځـي
کلـه کلـه لار کښـې تېـروتلے شـومره ښـهٔ بـه وه

نـه چـې ډېـر مالـداره وے نـه د پـولې پـړق تـه ناسـت
خپـل مشـر مـو داسـې کـس تـاکلے شـومره ښـهٔ بـه وه

دا چـې دے روان تـوپـک پـه لاس کښـې چـې بـس اولـم ئـې
دا ورور کـه دي ورور نـه ځارېـدلے شـومره ښـهٔ بـه وه

مـا نـه شـوک حسـينه، بـا حيـا کلـي کښـې نـه وه خـو
لوښـه د غريـب هـم چـا پوښـتلے شـومره ښـهٔ بـه وه

زۀ لکـــه ماشـــوم غونـــدې اَزاد او بـــې پـــرواه ګلـــې
ستاســو چـــم تـــه تللـــے او راتللـــے خـــومره ښـــۀ بـــه وه

هـــر پښـــتون پښـــتو ژبـــه وئـــيلے او لـــيکلے شـــوه
هـــر پښـــتون پښـــتو ژبـــه لوســـتلے خـــومره ښـــۀ بـــه وه

وے چـــې پېښـــور د امـــن کـــور لکـــه اول چـــې وو
زۀ پکښـــې بـــې غمـــه ګرځېـــدلے خـــومره ښـــۀ بـــه وه

لـــوړ مقـــام زمـــونږ وے د دنيـــا پـــه هيوادونـــو کښـــې
مـــونږه تـــه ټـــول خلـــق زيرېـــدلے خـــومره ښـــۀ بـــه وه

خـنـګ چې شعيب خـان د خپـل زړګي کـور کښې سـاتلې ئې
داسـې کـه تـا هـم زړۀکښـې سـاتلے خـومره ښـۀ بـه وه

★★★

یار چې له یاره جدا کېږي خلقه
زړۀ ئې یو بل پسې خوږېږي خلقه

څۀ چې تېرېږي په هغه تېرېږي
د چا جونګړه چې سوزېږي خلقه

د بې عقلۍ او نا پوهۍ د لاسه
لړه خبره وي ډېرېږي خلقه

نادان جانان ته څوک څۀ اونه وائي
لاره کښې ما ته چې اودرېږي خلقه

که ئې هر څو زړونو کښې پټه ساتۀ
مینه هېڅ کله نه پټېږي خلقه

ما ته ئې مینه لېونۍ راکړې
شعیب مې چرته کښې هېرېږي خلقه

که ستا په شاني ښائست په دې جهان نشته
مئين هم بل ګلالۍ زما په شان نشته

چې وي خوشحال نړۍ کښې هر وخت په يو حالت
داسې څوک نه وينمه داسې انسان نشته

شاعر ئې نه ستائي د سرخو شونډو په سر
نن سبا پوزه باندې د چا پېزوان نشته

زما زيبا وطن د اور لمبو کښې سوځي
پکښې د امن ګله نوم او نشان نشته

محفل نن سوړ سوړ دے بېخي څۀ خوند ئې نشته
اوهو! راياد شو راته نن شعيب خان نشته

★★★

ښکلې حيا ناکه پرده داره ده
خدائيګو جوړه شوې ما د پاره ده

يو د محبت په چارو نه رسي
نوره ښځه قابله ده هوښياره ده

څوک چې ورته اوګوري شېدا شي پرې
دومره زړه راښکونکې حسن داره ده

خپله مينه سر له رسولو ته
سر قربانولو ته تياره ده

کله چې غصه شي نو توبه توبه
ډېره غصه ناکه جهګړماره ده

ټولو نه اعلی صفت ئې دا دے چې
ما سره مخلصه وفاداره ده

بل به اورونه شي سرخي په شونډو پورې نه کړې
دا اثري سترګې دې هم په غلطۍ تورې نه کړې

خود به ئې ورځ په ورځ ګېرېږي مئينان په جال کښې
تا چې دې تورې اوږدې زلفې چرته سپورې نه کړې

د وِصل شپه ده بس خبرې به د زړونو کوو
ستا دې قسم وي چې خبرې به نن نورې نه کړې

بيا راته وايه بې وفا که ته مې زړۀ ته راغلې
ما د هغې نه پس د زړۀ دروازې پورې نه کړې

ته خو د غم سره تړلي ئې غم اوزپوُو
خوشحالۍ پېښه ولې ته زمونږ په لورې نه کړې

هر يو مشکل راته اسان شي ستا دُعا په وجه
دا سلسله د دُعا بنده ګرانې مورې نه کړې

★★★

زړۀ مې ژاړي چې ئې وينم چې په کوم يو لوري ځمه
پښتون ګېر د لمبو مېنځکښې که په غر دے که په سمه

هسې نه چې ډزې اوشي هسې نه چې بم چاودنه
زۀ که کورته په خير راشم نو هم څو څو ځلې مرمه

اور کښې سوځي خوارغريب دې ولې ته په سترګو ړوند ئې
چې په خپل محل کښې پروت ئې ښۀ مزو کښې ښۀ بې غمه

زورور ئې، متهور ئې، هم خبر يم ستا په چل ول
ستا د زور نه يم اغياره، خو توبه مې ستا له ممه

ګلې ډېره موده پس چې د نوښار بازار ته لاړم
ستا بشر به مې ليدلو چې په کومې لارې تلمه

دا مې زړۀ باندې ارمان دے يه شعيبه د زړۀ سره
چې زما د غاړې هار شي اوزۀ ستا د غاړې شمه

# زما کلے

په کلو کښې د تولو نه اوچت دے زما کلے
ښائسته په دے دنيا لکه جنت دے زما کلے

د کلي مو چاپېره دي ښۀ ښکلي شينکي غرونه
ښې يخې هواګانې وي ښۀ ښکلي منظرونه
ځوانان مو غېرت مند او حياناکې مو دي جُونه
يو ښکلې نمونه د ننګ او پت دے زما کلے

زمونږ د کلي مينځ کښې ښې صفا اُوبۀ بهيږي
هم ځښتُوئې هم پرې لامبُو په شړا اُوبۀ بهيږي
هم غرونو کښې ملګرو په هر خوا اُوبۀ بهيږي
ښۀ ډک د پاک الله د دې نعمت دے زما کلے

د کلي يو سړک دے چې نيم پوخ دے نيم کچه
د جُونو د تعليم هم پکښې نشته مدرسه
بيمار له مو ملګرو وي د يو الله اسره
محرومه د صحت د سهولت دے زما کلے

د خلقو توجه ځان له راکاږي يو منظر
د پاک الله نوم ليک دے اے ملګرو به يو غر
صفا ښکاري د لرې نه د سترګو په نظر
په دې وجه ملګرو خوش قسمت دے زما کلے

خلق ملا بانګ سره پاڅي سحر وختي
راوړي د غره خرڅُون او سوَځولو ته لرګي
په دې وجه ساتي خپل ښائسته ښکلي بچي
روان هم د دې غرونو په برکت دے زما کلے

حجرې کلي کښې شته دي که ګودر کلي کښې نشته
دشمن شکر دے څوک د چا د سر کلي کښې نشته
هر خوا ته مينه مينه ده هيڅ شر کلي کښې نشته
ساتلے پاک الله د هر نفرت دے زما کلے

جرګې کلي کښې کيږي مرکې کلي کښې کيږي
په دې وجه ملګرو فيصلې کلي کښې کيږي
قدر د ميلمه هم په حجرې کلي کښې کيږي
ملګرو مينه محبت دے زما کلے

بـاران کښـي چـې خـوړ راشـي، شـي د لارې مسـئله
بيـا نـه شـو وړے ملگـرو تـر قبرونـو جنـازه
حـل نـه کـړه چـا تـر اوسـه زمـونږ دغـه مسـئله
اوخـتے پـه څـۀ لـوې مصـيبت دے زمـا کلـے

د خـاؤرې راوتلـې دي پـه کلـي کښـې درنگونـه
هر وخت ترې ځي کاهي سيمنټ فيکټرۍ ته ډک ټرکونه
اوکتـل پوهـانو کـه يـو ځـل زمـونږه غرونـه
ملگـرو معـدنياتو نـه برچـت دے زمـا کلـے

قمرميلـه کښـې ټـول خلـق اوسـيږي باشـعور
ضـلع مـو د نوښـار او ډاکخانـه مـو نظـامپور
پېښـه زمـونږ کلـي تـه يـو ځـل اوکـړے ضـرور
شـعيب وائـي چـې ټـول صـفت صـفت دے زمـا کلـے

۱۔ پہ کاهي نومي کلي کښې د عسکري سيمينټ فيکټرۍ شاخ دے چې مونږ ورته د کاهي سيمينټ فيکټري وايو۔

★★★

بـــل قتلــوي او کـــه نـــه ځـــان قتلـــوي
مســـلمان پـــاخي مســـلمان قتلـــوي

زمـــونږ پـــه ســـيمه يـــو جـــلاد راغلـــے
زمـــونږ د ســـيمې ماشـــومان قتلـــوي

کـــه جنـــت غـــوارې پـــه ځـــان بـــم اوتـــړه
پـــه دې خبـــره مـــې ځوانـــان قتلـــوي

هـــم مـــې پـــه کـــور کښـــې زنانـــه وژنـــي
هـــم مـــې ســـپين ږيـــري بوډاګـــان قتلـــوي

قتـــل کـــړي تـــول انســـانيت شـــعيبه
کلـــه چـــې څـــوک هـــم يـــو انســـان قتلـــوي

★★★

کـــه ئـــې ســـاده کـــه ئـــې نـــادان لالـيـــه
ئـــې د هـــر چـــا نـــه پـــه مـــا ګـــران لالـيـــه

زمـــا د پـــاره ئـــې د ســـرو زرو ګـــران
د بـــل د پـــاره ئـــې ارزان لالـيـــه

بيـــا ئـــې د عقـــل دروازې خلاصـــې شـــي
چـــې ګـــزار اوخـــوري د دوران لالـيـــه

کـه سـتا پـه شـانې ښائسـت نـه لـري څـوک
نشـــته مئـــين زمـــا پـــه شـــان لالـيـــه

شـــعيبه زۀ چـــې ســـتا شـــم تـــه زمـــا شـــې
زمـــا پـــه زړۀ دے دا ارمـــان لالـيـــه

اور دې په کور اولګېدئې په خطر پښتونه
لړ په حالاتو باندې اوکړه نظر پښتونه

شوې خوشحالۍ د چم دې په وير ژړا بدلې
امن بدل شولو ټول دلته په شر پښتونه
ولې به نه يم خفه ښنګه به غم نه کووم
ته چې په شته کور کښې ئې کړه په سر پښتونه
يو دې په کور بمباري بله زما نه واوره
دي بم چاودنې هر خوا مه ځه بهر پښتونه
هغوې خو غواړي دلته دغه د شر خوروَنه
چا چې نوم تا له درکړو د ترهه ګر پښتونه
ښنګ چې پېدا وو وړاندې فخرِ افغان دلته کښې
خدا ے دې پېدا کړي يو بل هغسې نر پښتونه

شعيبه دومره ظلم چې په دې دومره څهٔ کښې
ښېې ابلې ښېې، سر بير، ګرځې نهر پښتونه

★★★

نـه ستا زړګے صبرېږي نـه زمـا زړګے صـبرېږي
د میـنـــې زوروري نـــه د چـــا زړګـــے صـــبرېږي

چې تکـه تـوره شـپه کښـې دوه مئـین لېـوني ناسـت وي
والله کــه د یــو بــل ئــې تــر سـبا زړګـے صـبرېږي

کـه مـرم کـه پـاتې کېـږم د هغـې دیـد تـه مـې بیـائې
چې یـو ځـل اموختـه شي کلـه بیـا زړګـے صـبرېږي

دا کــوم یــو دروغــژن دے چــې ئــې دا خبــره کــړې
"اشــنا چــې بــې وفــا شــي د اشــنا زړګــے صــبرېږي"

چـې اووائـې دروغ نـو د زړګـي سـکون ئـې نـه شـي
ملګــرو پــه صــفا ، رښــتیا وېنــا زړګــے صــبرېږي

چـې چرتـه هـم تـرې لاړ شـم د راتلـو فکـر کښـې اوسـم
والله کـــه مـــې د ښـــکلي پښــتونخوا زړګـے صـبرېږي

★★★

کوه د مینې د مستۍ خبرې
څه له کوې د مایوسۍ خبرې

راځي د غم خبرې ډېرې اشنا
کمې راځي د خوشحالۍ خبرې

دا هم د مینې یو اثر اوګڼه
دا چې کوومه لېونۍ خبرې

څنګه هغه څنګه ئې مینه خلقه
څنګه کړم هېرې پخوانۍ خبرې

جانانه ما ځان سره سیال مه ګڼه
ما نه دي پاتې د سیالۍ خبرې

شعیبه تا ته به څنګ ګرانې نه وي
د خپلې ښکلې ګلالۍ خبرې

دا نظم ما د خپل ګران او خوږ استاد ګران مسعود جان صاحب (ګورنمنټ پوسټ ګریجویټ کالج نوښار، پو لیټیکل سائنس څانګه) د مور بي بي د وفات نه پس لیکلے دے. نظم مې اصل کښې د مسعود جان صاحب د مخې لیکلے دے یعنې هغوي چې ما ته څۀ وئیلي وو په دې حقله هغې ته مې د قلم ژبه ورکړې ده.

## مورې

زما د زړۀ ډیوې وې په تا روښانې مورې
اے په ما ګرانې مورې الله دې مل شه

ستا الله هو الله هو زۀ هېرولے نه شم
مورې د ستا جدائې خدائیګو زغملے نه شم
دا راډک شویزړۀ مې ایسارولے نه شم
هر وخت کووم درپسې زۀ ژړاګانې مورې

د ستا وجود سره وه ډېره ښکلا په کور کښې
وې خوشحالۍ زمونږه سحر، بېګا په کور کښې
ستا په دعا باندې وه هر خوا رڼا په کور کښې
د ځان سره دې يوړې اُ رڼا ګانې مورې

مورې د مينې نه ډک هغه کتل دې نشته
هغه مسکا دې نشته هغه خندل دې نشته
ته رانه لاړې داسې چې بيا راتلل دې نشته
زما د زړهٔ کوځې دې کړلې ويرانې مورې

پرون مې ته بې حده را ياد بدلې مورې
تا چې زما غېږه کښې سلګۍ وهلې مورې
زهٔ څهٔ خبر وومه چې زما نه تللې مورې
ډېرې مې کړي درته وې دعا ګانې مورې

يو شعر

ما له ئې ټوپک د دوکان لوبو له اغستے وو
ماسره ډېر بد په ماشومتوب کښې بابا کړي دي

★★★

ډېره موده پس چې يو څو لحظو ته يار ملاو شي
روح مې سکون او مومي زړۀ ته مې قرار ملاو شي

د ګلي بعضې ساده ګلې ښار کښې مخ ښکاره کړي
خو زر ئې پټ کړي چې د ګلي کس په لار ملاو شي

بيا به هم نه يُو مونږ خوشحاله انسانان يُو کنه
که هر يوکس ته په خپل ژوند قسمت اختيار ملاو شي

زما د چم خلق سحر نه تر ماښامه پورې
په دې اميد تکرې خوري که چرته کار ملاو شي

زۀ چې هغې ته کله هم د ملاقات اووايم
په خله که اوکړي هغه سل ځلې انکار ملاو شي

هغه بيا ټول عمر له ښاد وي دا دعوه ده زما
ښۀ تربيت چې کوم ماشوم ته د مور پلار ملاو شي

چـم کښـې بـه نـه وي د بـدو خبـرې
لنـډه يږي تـل کـه پـه جرګـو خبـرې

مـا بانـدې زهـر لګـي بـد مـې لګـي
کـوي پښـتون چـې بـې پښـتو خبـرې

لاړه سـاده ليلـى هوښـياره شـوله
کـوي د سـترګو پـه ښـو خبـرې

هـر وخـت رټـم پـه دې عـادت ګلالۍ
لاناسـته نـه وي کـړې د تلـو خبـرې

تـه هـم پـه زړۀ يـو څـو خبـرې لـرې
زمـا پـه زړۀ هـم پـه دي يـو څـو خبـرې

د زړۀ خبـرې پـه پـرده کښـې کـوه
شـعيبه نـه دي د کوڅـو خبـرې

★★★

پېغلــه ئــې ده ښـــکلې لکـــه حُـــور زمـــا د کلـــي
زلمـــے هـــم پـــه نـــرۍ د ے مشـــهور زمـــا د کلـــي

پـــه خلقـــه خوشـــحالۍ تـــرې نـــه پـــه بلـــه بلـــه درومـــي
خـــو مخـــه د غـــم بـــاد کـــوي ضـــرور زمـــا د کلـــي

د ګټـــې بـــې لـــه د نـــه بـــل والله چـــې کـــور کښـــې نـــه وو
دا کـــس چـــې بـــم چـــاودنې کـــړو معـــذور زمـــا د کلـــي

"قل هو" ورباندې چُف کړي خپله مور چې په خير راشي
چـــې کـــور نـــه مـــزدورۍ تـــه ځـــي مـــزدور زمـــا د کلـــي

زړېـــږي بـــه د پـــلار پـــه کـــور کښـــې ښـــکلې پېغلـــې څـــه لـــه
کـــه خـــتم شـــو د داج د غـــه ناسُـــور زمـــا د کلـــي

شـــعيبه دا قيصـــه خـــو تولـــه ورانـــه د هغـــو ده
چـــې دي پـــه حفاظـــت بانـــدې معمـــور زمـــا د کلـــي

## ګـیـلـه

ما درته نه ویل
ګله واده دې اوکړو
بس دے بهر ته مه ځه
دلته په خپل وطن کښې
څۀ کار روزګار کوه
خو تا مې اونه منل
ګله بهر ته لاړې
زۀ دې په سره جوړه کښې
کور کښې یوائې پرېښووم
پس له هغې جانانه
ما د همځولو سره
د خوشحالو په موقعه
چرته سیالي اونه کړه
ما اخترونو کښې هم
خپلو لاسونو باندې
نکریزې پورې نه کړې
ما چرته خپلې لیچې
د بنګړو ډکې نه کړې
ستا ښائسته بچي هم

لکه یتیم لوې شوي
دوي د پلار مینې ته
دي ترسېدلي مدام
دوي به هر وختې وئیل
بابا به کله راځي.......
ته به دوه درې کاله پس
صرف دوو، دریو میاشتو ته
لاځیه کور ته راغلې..
منم غربت وو اول
خو چې بچي دې لوے شُو
نو بیا خو ستا بچو
ښهٔ مزدوري کوله
ما درته بیا بیا وئیل
بس دے وطن ته راشه
ولې تا چرته منل....
تا به وئیل شېریني
زهٔ اوس په خپل وطن کښې
وخت تېرولے نه شم
زهٔ د څو میاشتو نه زیات
شېریني خپل وطن کښې

ايسا رېدلے نه شم..........
لالیه تا خو زما
ښامار ښامار زلفې
تورې اوږدې او تار تار زلفې
ستا د راتګ په ختګبدلي طمع
د انتظار په تکه سره غرمه
دغه دي سپینې کړلې....
تا خو زما ځواني
تا خو زما خوشحالۍ
تا زما هر ارمان
پردي وطن نه ځار کړو..
زما خو بیا هم خیر دے
ولې چې تا ته ګورم
ته هم ځواني نه لرې
ته هم مستي نه لرې
په سپینه ږیره باندې
چې خپل کاله له راغلې
خوا له مې هله راغلې......

# ګناه مې دا وه

زۀ وومه ښکلې
څۀ بې حسابه
مخ نه زما به شغلې ختلې
ووم پرده داره د حیا ډکه
زما کردار هم ډېر پاکیزه وو
خلقو به هم وې ته ډېره ښۀ ئې
دا به ئې هم وې ئې ګناهګاره
ګناه مې دا وه لور د غریب ووم
نو وادۀ نۀ شوم
په کور زړه شوم....

# فرق

خدایه د ستا په زمکه
د ستا د زمکې خلق
څومره انصاف خوښوي
ځکه چې هر کله هم
د خوراک څښاک په نرخ کښې
د ګېس د تېلو نرخ کښې
یا د بجلۍ په نرخ کښې
څۀ اضافه شوې ده
نو خدایه ټول خلق دي
د حکومت برخلاف
راپاڅي چغې وهي
ټول دوکانونه بند کړي
پوهنتونونه، کالجونه بند کړي
مظاهرو د لاسه ټول سړکونه بند کړي
ولې حېران په دې یم
خدایه هم دا خلق دي

د خوار پښتون په وينه
مظاهره خو پرېږده
اُف د خلې نه اوباسي
که د پښتون وينه بهېږي خېر د ے
پښتون دې ورځ تر ورځ قتلېږي خېر د ے
خو د بجلي نرخ کښې
د خوراک څښاک نرخ کښې
د ګېس، د تېلو نرخ کښې
دې اضافه نه کېږي......
خدايه د ستا په زمکه
د ستا د زمکې خلق
څومره انصاف خوښوي....

### يو شعر

مېلمه به ترې نه لاړ نه شي نهر په څۀ قيمت
کوربه که خلقه وي د پښتنې موره پيدا

# هائیکو

اے پــــــه مـــــا ګرانـــــــي
لارې د زړهٔ مـــــــې مـــــــدام
پـــــــه تــــــا ودانـــــــې

زمـــــونږ پـــــــه ســـــیمه
د امــــــن بـــــاد راولـــــــه
غــفــور، رحــیــمــــــــــه

اووایــه چــې خــهٔ رنګــې دې ښــاده کـــړم
تـــا راتـــه ســکون خوشــحالي راکړلـــه
تـــا خـــو بـــس زهٔ اوســـوومه بربـــاده کـــړم

د میــنې جــال کښــې چــې خــوک راګیــر شــي
د میــنې خونــد ئــې چــې تــر خلــې تیــر شــي
کــه افلاطـــون وي، هـــر خــهٔ ئــې هیـــر شـــي

هسې نه ښکارې کړي د ظلم، جبر
لاړو کوڅو کښې ځناور ګرځي
میاندې بهر ته ماشومان نه پرېږدي

خدایه تر څو به مونږ په خپل وطن کښې
د بل په خوښه په مرضۍ کوُو ژوند
په معاشي توګه ازاد کړې مونږه

خپله د ختهو لوټو کور کښې اوسم
خو د محل مالک خپل مشر جوړ کړم
ځکه زما مسئلې نه حل کېږي

★ ★ ★

او به ښځُو دواړه خورماتنګ۱ کښې اوبه
بیا به زاوۀ۲ ته څُو لرګي به اوکړُو
زۀ به ئې خرڅ کړم ته به کور ته راوړې

اوړي کښې يخې وي د واورې په شان
ژمي کښې تړمې د لامبو جوګه وي
د جرجُوړي³ خوړو اُوبو ځاربېږه

نه خو ګورګورې نه کرکڼې، بېرې
نه د پلوسې ګل تحفه کښې غواړي
ګل د ګلاب غواړي جانان خو نشته

۱-خورماتنګ زمونږ د کلي غرونو کښې يو غرد ےچې اوبه پکښې پرېمانه دي- زمونږ کلي ته هم دغه اوبه د پائپونو په ذريعه راغلي دي-
۲-زاوۀ هم زمونږ غرونو کښې يو غر دے چې د لرګو د پاره شهرت لري-
جرجُوړے- زمونږ کلي کښې د يو کمر نه اوبه راوځي چې دغه بيان شوېښائستونه لري-

# یه پېښوره په تا څهٔ شوي دي..؟؟

د مړو ډکې ستا کوڅې ستا بازارونه کنه
یه پېښوره په تا څهٔ شوي دي
هره ورځ چَوي دلته ځائے په ځائے بمونه کنه
یه پېښوره په تا څهٔ شوي دي

په تا مئین چې کله هم د ستا په لور راځي
یقین ئې نه وي چې ژوندے به راشي
ټولو ته اوګوري په مینه چې د کور راځي
یقین ئې نه وي چې ژوندے به راشي
مور ئې د خبر تر واپسۍ کوي نفلونه کنه
یه پېښوره په تا څهٔ شوي دي

زلمو به وي که چرته لرې شان پیسې راشي
نو پېښور کښې به سامان اخلو
پېغلو به وې چې د وادهٔ ورځې نزدې راشي
نو پېښور کښې به سامان اخلو
خو اوس د پېغلو بې له تا کېږي وادونه کنه
یه پېښوره په تا څهٔ شوي دي

پښوا به هرې مور د خدا ے دغه دعا کوله
چې پېښور کښې مې افسر شي بچے
د هر بابا زړګي هم دغه التجا کوله
چې پېښور کښې مې افسر شي بچے
منع کوي اوس ستا د لور خپل اولادونه کنه
یه پېښوره په تا څهٔ شوي دي

اول چې ستا خیبر بازار صدر بازار کتو له
د لرې لرې ځائے کوم خلق راتلل
ستا چوک یادګار او تاریخي بالاحصار کتو له
د لرې لرې ځائے کوم خلق راتلل
نن ستا د نوم نه ورې غوږونو ته لاسونه کنه
یه پېښوره په تا څهٔ شوي دي

هره ورځ دلته نوې نوې حادثې کېږي
پکښې مره کېږي بې ګناه خلق
دلته معمول په شان خودکشې دهماکې کېږي
پکښې مره کېږي بې ګناه خلق
کلي په کلي چم په چم کېږي ويرونه
کنه یه پېښوره په تا څۀ شوي دي

ډک د مولاد بې شماره نعمتونو نه وې
تۀ د ګلونو د رنګونو ښار وې
ډېر په امان ته د ګولو نه د بمونو نه وې
ته د ګلونو د رنګونو ښار وې
ستا د ښائست نه وو جهان کښې مثالونه کنه
یه پېښوره په تا څۀ شوي دي

وران پېښور چې یو ځل بیا د امن کور جوړ شي
زۀ شعیب خدایې نه دغه سوال کوومه
چې بیا د ټولو پښتنو د زړۀ ټکور جوړ شي
زۀ شعیب خدایې نه دغه سوال کوومه
چې پکښې اخلم په ډاډه زړۀ قدمونه کنه
یه پېښوره په تا څۀ شوي دي

# پوښتنه

زما همزولي پېغلې
په سره ډولۍ کښې پخوا
د لالي کور ته تلې
د بعضو بعضو پکښې ستر اولادونه ګرځي
خو زۀ په کور ناسته یم
ځکه چې ښکلې نۀیم
د رنګه توره یمه
د مخ جوسه مې زړۀ رابښکونکې نۀ ده
نه د پیسې والا یم
نوره د خدائے په فضل
څۀ خامي نه لرمه
زۀ د خپل چم د سړو
د دې بې حسه سړو
یوه پوښتنه کووم
چې تاسو ټول سړي چې
کله وادونه کوئ
نو د وادۀ نه مخکښې

د کردار مخ اړوئ
د حیا مخ اړوئ
په واړه پېغلو کښې
صرف ښائست لټوئ
خو چې واده مو اوشي
بیا هم د هغې ښځې
تاسوپه ځائے د ښائست
یوښهٔ کردار غواړئ
نو د وادهٔ نه مخکښې
د ښائست تَله باندې
دا پېغلې څهٔ له تلئ....